# هیواد

ورځپاڼه

مؤسس: عبدالرووف بېنوا

د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز

چهارشنبه د شعبان المعظم ۱۳ مه ۱٤٤٦ ق کال، د سلواغې ۲٤ مه ۱٤۰۳ ل کال، د فبروري ۱۲ مه ۲۰۲۵ م کال، خصوصي ګڼه ۵٤۲ مه، پرله پسې ګڼه ٦۳۲ مه، اتمه دوره


## د جهادي ارزښتونو د ساتنې په اړه د همغږۍ غونډه وشوه

د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د رهبرۍ له لوري د جهادي ارزښتونو د ساتنې په اړه د ځینو نورو ادارو له استازو سره د همغږۍ غونډه وشوه.غونډه کې د ګرځندوی، مالي او اداري چارو معین مولوي قدرت الله جمال، د خپرونو چارو معین مهاجر فراهي، د هنر او فرهنګ معین مولوي عتیق الله عزیزي، د ځوانانو چارو معین قاري محمد یونس راشد، د جهادي ارزښتونو د ساتنې عمومي رئیس مولوي ذبیح الله نوراني، د چارو اداري لوی ریاست، د ملي دفاع وزارت او کورنیو چارو وزارت استازو ګډون کړی وو.په پیل کې د ګرځندوي، مالي او اداري چارو معین مولوي قدرت الله جمال د جهادي ارزښتونو د ساتنې د ارزښت او اهمیت په اړه هر اړخیز معلومات شریک کړل او د بېلابېلو ادارو استازو ته یې د جهادي ارزښتونو د ساتنې په برخه کې لازمي سپارښتنې وکړې. ورپسې د هنر او فرهنګ معین مولوي عتیق الله عزیزي د جهادي ارزښتونو د عمومي ریاست او د هغه د فعالیتونو په اړه خبرې وکړې او ویې ویل، چې له دغه ریاست سره باید په بېلابېلو برخو کې همکاري وشي، تر څو د تېر شل کلن جهاد آثار په سمه...**۳مخ**

## د ریاست الوزراء اداري مرستیال له بهره راستنو شویو شخصیتونو سره وکتل



د اسلامي امارت د ریاست الوزراء اداري مرستیال مولوي عبدالسلام حنفي وړمه ورځ له بهر څخه راستنو شویو یو شمېر شخصیتونو سره وکتل. په دې کتنه کې لومړی هغوی د سراسري امنیت په تأمین او د خلکو ستونزو ته په رسېدو کې د اسلامي امارت د مسئولینو د هڅو او کوښښونو یادونه وکړه او خوښي یې ورباندې څرګنده کړه.هغوی زیاته کړه: په هیواد کې د رفاه او ټولنیزې هوساینې برابرېدل وطن ته د ډېرو شخصیتونو د راستنېدو لامل شوي او له شک پرته دا د اسلامي امارت له لاسته راوړنو څخه ګڼل کېږي.یادو شخصیتونو د اسلامي امارت له مسئولینو او مشرانو وغوښتل ،چې د هیواد په بېلابېلو برخو کې د پراختیایي...**۳مخ**

## د کندهار د دره نور مرمر ډبرو پروژې تړون له یو ترکي شرکت سره لاسلیک شو

د کانونو او پټرولیم وزارت سرپرست ملا هدایت الله بدري، د «امي اوغلو» ترکي شرکت له مرستیال موسی امي اوغلو سره، د کندهار د دره نور مرمر ډبرو د سترې پروژې تړون پرون په کابل




کې لاسلیک کړ.دغه تړون د لسو کلونو لپاره دی او پر بنسټ به یې یاد شرکت د ۶.۲ میلیونو امریکایي ډالرو په ارزښت پانګونه وکړي او د معیاري اکتشاف، استخراج او پروسس...**۳مخ**

## له چین څخه افغانستان ته پر سوداګریزو توکو بار رېلګاډی را خوځېدلی



د چینایي رسنیو د راپور له مخې له چین څخه یو بار وړونکی ریلګاډی وړمه ورځ د دې هیواد له چونګ‌چینګ ښاره د افغانستان په لور روان شوی. سرچینې ویلي، چې په دې ریلګاډي کې مخابراتي تجهیزات او نور وسایل بار دي او تمه کېږي ،چې له ۱۲ تر ۱۵ ورځو پورې به افغانستان ته ورسېږي. چینایي چارواکو دا افغانستان ته د ریلګاډي په وسیله په مستقیم ډول د سوداګریزو وسایلو د لېږدولو یوه نوې لاره بللې او ویلي یې دي چې ریلګاډی به یې له قزاقستان او ازبیکستان څخه په تېریدو چونګ‌چینګ او افغانستان سره ونښلوي. سرچینه وایي: په دې ریلګاډي کې د چین د "ZTE" مخابراتي شرکت له خوا جوړ شوي مخابراتي وسایل به د افغانستان د مخابراتي شبکو د پراختیا لپاره وکارول شي.

## الماتا کې افغان سوداګرو ته د یوه مرکز پر جوړېدو خبرې وشوې



د صنعت او سوداګرۍ وزارت سرپرست نورالدین عزیزي، وړمه ورځ په کابل کې د قزاقستان جمهوریت له سفیر ((ګزیز اکباسوف)) سره کتلي دي.باختر آژانس ته د صنعت او سوداګرۍ وزارت د معلوماتو له مخې؛ په دې کتنه کې دواړو لوریو په الماتا ښار کې د افغان سوداګرو لپاره د یوه سوداګریز مرکز د جوړېدو، د دواړو هېوادو د سوداګرو ترمنځ د قراردادونو په تړاو د ترسره شویو ژمنو د عملي کېدو، په افغانستان کې د قزاقي سوداګرو د پانګونې او په کابل کې د قزاقستان سفارت له‌خوا افغان سوداګرو ته د ویزو صادرولو په برخه کې د آسانتیاوو رامنځته کېدو په اړه بحث او خبرې کړې دي. د کتنې په پای کې، د دواړو هېوادونو د سوداګرو د ستونزو د حل پر لارو چارو هم خبرې شوې دي.

## د کندهار له مرکزي زندان څخه ۳۱ بندیان ازاد شول

د عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظه‌الله ) د ځانګړي فرمان پر اساس د کندهار له مرکزي زندان څخه ۳۱ بندیان ازاد او ۱۳۸ نورو د بند موده کمه شوې ده.د زندان مطبوعاتي مسئول رفیع‌الله صاحب‌زاده باختر اژانس ته ویلي، چې دا پرېکړه د عالیقدر امیرالمؤمنین د عفوې او د سترې محکمې د حکم پر اساس عملي شوې ده.

په ورته وخت کې ازادو شویو زندانیانو د دې فرمان هرکلي وکړ او یادونه یې وکړه، چې دغه اقدام د دوی د اصلاح او د نوي ژوند د...**۳مخ**

## د افغانستان خاوره کې د تاپي پروژې چارې په چټکۍ سره روانې دي




د تاپي ګازو نل لیکه چې د افغانستان له لارې د ترکمنستان طبیعي ګاز پاکستان او هند ته لېږدوي، د سیمې په کچه یوه ستره اقتصادي پروژه ده. تازه ترکمنستان د دې پروژې د چارو د ګړندیتوب غوښتنه کړې، خو د دې پروژې د دوو نورو شریکانو له لوري، چې پاکستان او هند دي څه نه دي ویل شوي.

د سرپرست حکومت د کانونو او پټرولیم وزارت وایي، د افغانستان په خاوره کې د تاپي...**۳مخ**

## غور کې د ۳۷ ښوونځیو او د ۲ دیني مدرسو ودانۍ ورغول شوې



د پوهنې وزارت خبر ورکړی، چې غور ولایت کې یې د ۸.۵ میلیونه افغانیو په لګښت د ۳۷ ښوونځیو، د ۲ دیني مدرسو او د یو دارالحفاظ د بیارغونې پروژې بشپړې کړې دي.

د وزارت د خبر له مخې دغه شمېر ښوونځي او مدارس یې په اساسي ډول بیارغولي، چې د پوهنې کیفیت د ښه والي برخه کې به مثبته اغېزه ولري او زده کوونکو ته د سالم چاپېریال زمینه هم برابره شوه.

د یادونې وړ ده، چې د پوهنې وزارت تېرو څه باندې درېوو کلونو کې د زرګونو هغو ښوونځیو ودانۍ بیرته رغولې دي، چې د جګړو او د تېرو حکومتونو د نه پاملرنې له کبله زیانمنې شوې وې.

## چین: د واخان کورېډور لارې پرانیستلو کې هیڅ ستونزه نه شته



کابل کې د چین سفیر ژاو شینګ ویلي، هېواد یې د واخان لارې پرانیستلو او چین سره د افغانستان نښلولو کې هیڅ ستونزه نه لري. ژاو شینګ ویلي، د دغې لارې په پرانیستل کېدو سره به بېلابېلو برخو کې پرمختګونه رامنځته شي.ښاغلي شینګ دغه څرګندونې د ریاست الوزراء د دفتر رئیس ملا عبدالواسع سره کتنه کې کړې دي.نوموړي ویلي، دا مهال د چین له لوري بامیانو کې د برښنا رسولو، کندهار کې د روغتون جوړولو او تخار کې د امو دریا د تېلو پروژې چارې دوام لري. دغه لوړ پوړي چینایي ډیپلومات زیاته کړې، له ۲۰۲۱ کال وروسته د چین او افغانستان اړیکې لا پیاوړې شوي او د دواړو هېوادونو ترمنځ راشه درشه او سوداګرې زیاته شوې.بله خوا ملا عبدالواسع ویلي، چین دې د اسلامي امارت د رسمیت پېژندنې برخه کې خپلې هڅې نه سپموي.

## د ټرانسپورټ وزارت: د موټرو د ګړندي تګ د کنټرول لپاره ۸۰۰۰ موټرو کې (جي پي اس) سیستم فعال شوی



د ټرانسپورټ او هوایي چلند وزارت وایي، چې د ترافیکي د سرعت د کنټرول په موخه یې په شاوخوا ۸ زره موټرو کې د (جي پي اس) سیستم فعال کړی دی.د یاد وزارت ویاند حکمت‌الله اصفي وایي، چې دا موټرونه د ځانګړو ټیمونو له لوري څارل کېږي او د سرغړونې او زیات سرعت په صورت کې سپارښتنه ورته کېږي او له بیا تکرار وروسته قانوني چلند ورسره کېږي.له دې وړاندې یو شمېر هېوادوال اندېښمن وو، چې د لویو لارو خرابوالي، د معیاري ترانسپورټ نشتوالي او د موټرو د نه کنټرول له امله هره ورځ ګڼ هېوادوال د ترافیکي پېښو قرباني کېږي. تازه د ټرانسپورټ وزارت ډاډ ورکړي، چې د ترانسپورټي او بس موټرو د سرعت د کنټرول په برخه کې پوره هڅې کوي او په دې تړاو یې شاوخوا ۸ زره موټرونه جي پي اس کړي...**۳مخ**

### د اسلامي امارت د پوځ برلاسی حیثیت

۲مخ

### بارانونه او واورې؛ د رحمت پیغام او د اقتصادي ودې هیلې

سرلیکنه

۲مخ

## سرلیکنه



# باران‌ونه او واورې؛ د رحمت پیغام او د اقتصادي ودې هیلې

په وروستیو میاشتو کې د افغانستان له مختلفو ولایتونو څخه د واورو او بارانونو د اورېدو راپورونه ورکړل شوي، چې له اورېدې مودې وچکالۍ وروسته یې د خلکو، په ځانګړې ډول د کروندګرو، زړونه خوشحاله کړي دي. دا طبیعي نعمت، چې د چاپېریال، کرنې او اقتصادي پرمختګ لپاره حیاتي ارزښت لري، د اوبو زېرمې هم پیاوړې کوي.

د افغانستان اقتصاد تر ډېره پر کرنه ولاړ دی او د خلکو لویه برخه د کرنیزو محصولاتو له لارې خپل ژوند پرمخ وړي. وروستي بارانونه او واورې د لاندې دلایلو له مخې مهمې دي:

بارانونه او واورې د هېواد د سیندونو، بندونو، ویالو او ځاګانو د اوبو کچه لوړوي، چې دا د کرنې او څښاک لپاره ډېر ارزښت لري. که دا اوبه په سمه توګه ذخیره او مدیریت شي، نو د راتلونکو وچکالیو مخنیوی به وشي.

د بارانونو برکت دا دی چې د غنمو، اوربشو، سبزیجاتو، مېوو او نورو کرنیزو محصولاتو وده ښه کوي. کروندګر، چې له وچکالۍ کړېدل، اوس کولی شي په پوره باور سره په خپله ځمکه کې تخم وشیندي او د ښو حاصلاتو تمه ولري.

د افغانستان د ډېرو کلیوالو خلکو اقتصاد د مالدارۍ پر بنسټ ولاړ دی. بارانونه د څړځایونو شنه کېدل تضمینوي، چې دا د څارویو لپاره د طبیعي خوراک برابرولو کې مرسته کوي.

کله چې کرنه وده وکړي، اقتصاد هم وده مومي. د حاصلاتو ډېرښت د خوراکي توکو نرخونه کموي، د صادراتو ظرفیت لوړوي او د کلیوالو خلکو اقتصادي وضعیت ښه کوي.

که څه هم بارانونه او واورې د نعمتونو تر څنګ ځینې ستونزې هم رامنځته کولی شي، لکه سېلابونه او د سړکونو بندېدل، خو که حکومت او خلک د اوبو د مدیریت لپاره مناسبې تګلارې غوره کړي، نو د دې ستونزو مخنیوی ممکن دی. حکومت باید بندونه، حوضونه او د اوبو زېرمې جوړې کړي، ترڅو د باران او واورو اوبه بېځایه ضایع نه شي. د سیندونو او ویالو پاکول، د خطرناکو سیمو خلک خبرول او د طبیعي زېرمو رغونه کولای شي د ناوړه اغېزو مخه ونیسي... ۳مخ

## د اسلامي امارت مشروعیت، قوت او استحکام:

# د اسلامي امارت د پوځ برلاسی حیثیت

محمد قاسم عزام

د اسلامي امارت بنسټ د شریعت پر اصولو ولاړ دی، چې عدالت، امنیت او د ولس دیني او دنیوي مصلحتونه تأمین کړي. دا نظام د الله سبحانه وتعالی د قانون پر تطبیق ولاړ دی او د اسلامي اصولو پر بنسټ د ټولنې اداره کوي. اسلامي امارت د داسې شرعي نظام استازیتوب کوي چې د بهرنیو لاسوهنو، د سیکولریزم فشارونو او د استعماري قدرتونو د تسلط پر وړاندې د اسلامي امت د خپلواکۍ او عزت د ساتلو لپاره کار کوي. امارت د اسلامي نظام د بشپړ حاکمیت، د بیت المال د عادلانه استفادې او د ټولنیز عدالت د تأمین لپاره عملي ګامونه پورته کړي، چې دا یې د مشروعیت بنسټیز عوامل ګرځوي. د مشروع اسلامي دولت اساس د شریعت تطبیق، د ولس خیر غوښتنه او د عدالت نافذول دي. اسلامي امارت دا ټولې ځانګړتیاوې لري، ځکه یې واک نه د دیموکراسۍ د جعلي انتخاباتو، بلکې د جهاد، قربانۍ او شرعي مبارزې له لارې ترلاسه کړی. د اسلامي امارت مشروعیت یوازې د ځواک پر اساس نه دی، بلکې د ولس پراخ ملاتړ لري، ځکه چې د خلکو لپاره یې امنیت، اسلامي نظام او د بهرني اشغال د پای ته رسېدو شرایط برابر کړل. دا امارت د اسلامي تاریخ د سترو حکومتونو لکه د راشده خلافت، عباسي خلافت او عثماني خلافت په رڼا کې خپلې چارې پر مخ وړي او هڅه کوي چې د اسلامي امت لپاره یو داسې نظام نمونه وړاندې کړي چې د شرعي لارښوونو مطابق وي.

د اسلامي حکومتونو د زوال عوامل په تاریخ کې څرګند دي. هر هغه اسلامي دولت چې له دیني اساساتو واوړي، د عدالت پر ځای ظلم ته مخه کړي، د بیت المال اداره یې ناسمه شي، یا د بهرنیو قوتونو اطاعت غوره کړي، د زوال ښکار کېږي. اسلامي امارت له دې تجربو زده کړه کړې، ځکه یې د بهرني اشغال پر ضد جهاد وکړ، د نړیوالو فشارونو پر وړاندې یې خپل اسلامي هویت وساته او د اشغالګرو د غلامانو مفکورې یې رد کړې. امارت د نورو اسلامي حکومتونو له هغو تېروتنو څخه ځان ساتي، چې د غرب د سیاستونو پیروي یې کړې وه او بالاخره یې سقوط وکړ.

د اسلامي امارت د استحکام راز په درېوو مهمو برخو کې دی: اقتصادي، سیاسي، او نظامي قوت. اقتصادي قوت د هر حکومت د بقا لپاره اساسي عنصر دی او اسلامي امارت د اسلامي اقتصادي اصولو پر بنسټ د بیت المال اداره کوي. د سودي نظام پر ځای یې اسلامي مالي سیستم ته لاره هواره کړې، چې پکې د زکات، عشر او خراج اصول د اقتصاد د بنسټیزو برخو په توګه عملي شوي دي. د امارت د اقتصادي پالیسۍ موخه داده چې اقتصاد د ځان بساینې پر لور بوزي، ترڅو د بهرنیو مرستو پر ځای د داخلي تولید، کرنې او سوداګرۍ له لارې خپلواکي وساتي.

په دې لړ کې، اسلامي امارت د کرنې د ودې لپاره عملي اقدامات کړي، د اوبولګولو کانالونه او بندونه یې رغولي او بزګرانو ته یې اسانتیاوې برابرې کړې، ترڅو هېواد د خوراکي توکو له پلوه پر ځان بسیا شي. همداراز، د کانونو د قانوني استخراج لپاره یې هڅې ګړندۍ کړې، ترڅو طبیعي سرچینې د هېواد د اقتصادي ثبات لپاره وکارول شي. د داخلي سوداګرۍ د ودې لپاره یې د غیرضروري مالیاتو مخه نیولې او د سوداګرو لپاره یې اسانتیاوې برابرې کړې، ترڅو بازار ته وده ورکړي. همداراز، د اسلامي اقتصادي اصولو مطابق د وقف، مضاربت او مشارکت سیستم ته وده ورکوي، ترڅو د پانګوالو او عام ولس لپاره د عادلانه اقتصادي پرمختګ لارې پرانیزي. دا ټول اقدامات د دې لپاره دي چې هېواد له بهرنیو پورونو، اقتصادي انحصار او سودي نظام څخه خلاص او یو خپلواک او پیاوړی اقتصادي نظام ولري.



سیاسي قوت د اسلامي امارت بله مهمه ستنه ده، چې نه یوازې د داخلي استحکام لپاره کار کوي، بلکې د بهرني سیاست په برخه کې هم د اسلامي اصولو مطابق عمل کوي. امارت د اسلامي امت یووالي ته ژمن دی او د خپل بهرني سیاست موخه یې داده چې اسلامي هېوادونه د مشترکو ارزښتونو پر بنسټ سره نږدې کړي، ترڅو د استعماري قدرتونو د نفوذ مخه ونیسي. د بهرني یرغل پر وړاندې، امارت تل خپلواکۍ او استقلال ته لومړیتوب ورکړی، له هېڅ نړیوال ځواک سره یې د غلامۍ تړون نه دی کړی او د هر ډول لاسوهنې پر وړاندې یې خپل مستقل دریځ ساتلی. د دیني ارزښتونو ساتنه د دې نظام بنسټیز اصل دی، له همدې امله یې د غرب د کلتوري یرغل، سیکولري افکارو او لیبرالیزم پر وړاندې د اسلامي هویت ساتلو ته جدي پاملرنه کړې. اسلامي امارت نه د غرب د مصلحتونو تابع دی، نه د شرق د سیاستونو غلام، بلکې د خپلو شرعي اصولو مطابق خپلواک، متوازن او وقار لرونکی سیاست پر مخ وړي، ترڅو د اسلامي امت د سیاسي خپلواکۍ، عزت او اسلامي حاکمیت لپاره عملي ګامونه پورته کړي.

نظامي قوت د هر دولت د بقا لپاره اړین دی او اسلامي امارت یو داسې ځواکمن نظامي ځواک لري چې د دین، وطن او ولس د ساتنې لپاره قربانۍ ته هر وخت چمتو دی. د دې قوت ځانګړنه دا ده چې د استعماري قدرتونو پر مرستو نه، بلکې د جهاد، ایمان او قربانۍ پر روحیه ولاړ دی، چې همدې اخلاص او استقامت بریا وربښلې. د امارت نظامي ځواک نه یوازې دا چې د داخلي امنیت د ساتنې لپاره کار کوي، بلکې د اسلامي سرحدونو حفاظت ته هم ژمن دی، ترڅو د اسلامي امت دښمنان ونه شي کولای د دې نظام استحکام ته زیان ورسوي. د اسلامي امارت مبارزینو د اشغال پر ضد د کلونو جهاد په بریا پای ته ورساوه او اوس یې هدف دا دی چې... ۳مخ

# طرح اشغال غزه توسط ترمپ!

شبیر راحل

ترمپ طرح اشغال غزه و کوچ دادن اجباری باشندگان آنرا مطرح نموده و سخنان وی هیجاناتی را در دنیای عرب بوجود آورده است.

براساس بینش و طرح جدید ترمپ ، غزه را اینبار نه اسرائیل ، بل امریکا اشغال نموده و به محل امن تفریحی برای آمریکایان و متحدانش تبدیل خواهد کرد .

دولت های عرب که قوت و نیروی بازدارنده از اقدامات و طرح ترمپ را در اختیار ندارند ، در صدد برگزاری جلسه اضطراری اند و معلوم نیست در پایان این جلسه چه پیامی را به ترمپ ارائه خواهند نمود؟

اکثر سران دول عرب متحد و همکاسه ترمپ بوده و بعید به نظر میرسد که بتوانند در برابر آیدیای اشغال غزه توسط ترمپ سنگ اندازی نمایند.

سران دول عرب در فکر حفظ قدرت خویش اند و برای آنان اشغال غزه موضوع مهمی به شمار نمیرود.

* ترمپ در دور اول ریاست جمهوری خود، سفارت کشورش را از تل ابیب به بیت المقدس انتقال داده و بدینگونه به خواست همیشگی فلسطینی ها که بیت المقدس شرقی را پایتخت همیشگی دولت آینده فلسطین تصور می‌نمودند ، نقطه پایان گذاشت.

همچنان دولت اول ترمپ بلندی‌های اشغالی جولان را که در سال ۱۹۶۷ اسرائیل توانست آنرا در نتیجه جنگ از سوریه بدست آورد ، بخشی از خاک اسرائیل اعلان نمود.

* در دور اول حکومت ترمپ ، کشورهای امارات ، بحرین ، سودان و مراکش تحت فشار مجبور شدند تا اسرائیل را برسمیت بشناسند. درین میان تنها سعودی و چند کشور کوچک دیگر عرب باقی مانده و بدون شک فشار برای برسمیت شناختن اسرائیل بر آنان نیز افزایش پیدا خواهد کرد.

* وزیر خارجه دولت جدید ترمپ به تاریخ ۱۷ ماه فبروری به ریاض سفر نموده و یقیناً یک بخش عمده مذاکراتش با دولت سعودی ، موضوع بهبود روابط و برسمیت شناختن اسرائیل و پرداخت هزینه کوچ اجباری اهالی غزه به مصر و اردن توسط ریاض خواهد بود. گرچه مصر و اردن ظاهراً پیشنهاد ترمپ برای اسکان اهالی غزه در سرزمین های شانرا رد نموده اند ، اما اگر احساس نمایند که خطر از دست دادن کمک‌های مالی و نظامی آمریکا مطرح است ، در آنصورت قضیه فروش غزه را بدون چون و چرا امضا خواهند کرد.

*از دید ترمپ تنها اشغال غزه در برنامه های درازمدت وی گنجانیده نشده و حذف کامل حزب الله از ساختار حکومت آینده لبنان نیز در آجندای اشغالگرانه وی قرار دارد. براساس قانون اساسی لبنان در ساختار حکومتی و سیاسی این کشور سنی ها ، شیعه ها که شامل حزب الله نیز می‌شود و عیسوی ها ، باید حکومت مشترک بر پایه تفاهمات ملی تشکیل دهند. وقتی حزب الله از سهم داشتن در تشکیل حکومت آینده لبنان محروم ساخته شود ، یقیناً» قانون اساسی لبنان مورد دستبرد قرار گرفته و وحدت ملی و سیاسی مردمان این کشور صدمه خواهد دید و باید گفت که حکومت... ص۳

# اسلامي نړۍ باید د غزې غصبولو پر وړاندې چوپه پاتې نه شي

د امریکا د ولسمشر ډونالډ ټرمپ او د اسرائیلو د لومړي وزیر بنیامین نتنیاهو وروستیو څرګندونو د فلسطین د قضیې پر وړاندې د نړیوالې ټولنې اندېښنې نورې هم زیاتې کړې دي. ټرمپ د خپلو تازه پالیسیو له مخې اسرائیلو ته د بې سارې ملاتړ زمینه برابره کړې، چې په ترڅ کې یې نتنیاهو د ټرمپ په ځانګړې بلنه واشنګټن ته سفر هم وکړ، چېرې چې د غزې سیمې د اشغال د دوام اړوند مهمې خبرې وشوې. دا څرګندونې نه یوازې د فلسطینیانو پر حقونو ښکاره تېری دی، بلکې د نړیوال نظم او ثبات د کمزورۍ لامل هم ګرځي. دا د اسلامي نړۍ لپاره یو ستر امتحان دی، چې باید د دې مسئلې پر وړاندې چوپه پاتې نه شي او خپل کلک دریځونه اعلان کړي.

د ټرمپ دریځ، چې اسرائیل د غزې بشپړ کنټرول ته هڅوي او د نتنیاهو څرګندونې، چې په دې سیمه کې د اشغال دوام ته اشاره کوي، د نړیوالو قوانینو ښکاره نقض دی. د فلسطین خلک له لسیزو راهیسې د اسرائیلي یرغلونو، محاصرې او بشري ناورینونو سره مخ دي، او اوس داسې ښکاري چې دا بحران نور هم ژورېږي. ټرمپ او نتنیاهو د خپلو سیاسي اهدافو لپاره د فلسطینیانو د ژوند، ازادۍ او حقونو پر وړاندې لوبې کوي او دا یو نه منل کېدونکی حالت دی.

د اسلامي نړۍ مشران باید د دغو غیرمسئولانه دریځونو پر وړاندې خپل غبرګ پورته کړي. دا یوازې د فلسطین د قضیې ملاتړ نه دی، بلکې د نړیوال عدالت، سوله‌ییز ګډ ژوند او د ملګرو ملتونو د پرېکړو عملي کول دي. که اسلامي هېوادونه په دې مهمه موضوع کې چوپ پاتې شي، نو دا به یوازې د اسرائیلو اشغالګرو تګلارو ته نور هم مشروعیت ورکړي او فلسطینیان به نور هم له خپلو اساسي حقونو محروم کړي.

نړیوال نظم او ثبات د داسې اقداماتو په پایله کې سخت زیانمنېږي. که د نړۍ قدرتونه، په ځانګړې ډول امریکا، اسرائیلو ته د نړیوالو قوانینو د ماتولو اجازه ورکوي، نو دا به د نورو هېوادونو لپاره هم دا پیغام ولري ،چې دوی هم کولای شي د ځواکمنو ملتونو له ملاتړ پرته، هر ډول ناسم عمل ترسره کړي. دا به د نړۍ په نورو برخو کې هم شخړې، ناورینونه او ګډوډۍ زیاتې کړي.

اسلامي هېوادونه باید د فلسطین قضیې ته د یوې نړیوالې مسئلې په توګه وګوري او د عاطفي څرګندونو پر ځای، عملي اقدامات وکړي. سیاسي، اقتصادي او ډیپلوماتیک فشارونه باید د اسرائیلو پر حکومت زیات شي او نړیوالې ټولنه باید دې ته وهڅول شي ،چې د اسرائیلو پر غیرقانوني اقداماتو بندیزونه ولګوي. که اسلامي هېوادونه یو موټی دریځ غوره نه کړي، نو دا به د اسلامي نړۍ پر سیاسي اعتبار یو بل درروند ګوزار وي.

د دې لپاره چې د غزې او فلسطین قضیه نوره هم له لاسه ونه وځي، اړینه ده چې د اسلامي نړۍ مشران د نړیوالو بنسټونو له لارې، د دې موضوع په اړه واضحه پالیسي غوره کړي. که نړیوال عدالت ته مراجعه وشي، که اقتصادي بندیزونه ولګول شي او که د ډیپلوماتیکي فشارونو له لارې اسرائیل دې ته اړ کړای شي چې د فلسطین د خلکو اساسي حقوق ومني، نو دا به د سولې او ثبات لپاره یو مهم ګام وي.

په پای کې، که د اسلامي نړۍ مشران دا درک نه کړي، چې د غزې اشغال یوازې د فلسطینیانو مسئله نه ده، بلکې د ټولې اسلامي نړۍ حیثیت او وقار ورسره تړلی دی، نو دا به د دوی پر سیاسي، اقتصادي او ستراتیژیک نفوذ ژوره اغېزه ولري. د ټرمپ او نتنیاهو وروستي دریځونه باید د غندنې تر حده پورې محدود نه شي، بلکې د اسلامي هېوادونو لپاره د یوه عملي اقدام د پیل ټکی وګرځي.

# افغان اعلانات

**اطلاعیه مفقودی**

یک قطعه قباله شرعی نمبر ۳۴۲/۹۹ مورخ ۱۳۸۳/۹/۲۱ مرتبه محکمه ناحیه ۴ به اسم محمد اکبر جان فرزند مظفر الدین ولدیت محمد اکبر جان مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۲۳۸

**اطلاعیه فروش موتر**

اسامی محترم شرکت وصال جمیل لمتید یک عراده موتر پلیت ۱۶۴۵-۳ ش کابل نوع تیوتا کرولا جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای محمد الله فرزند محمدشیرین بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۲۴۲

**اطلاعیه فروش موتر**

اسامی محترم شرکت عاشقان خواجه عبدالله انصاری لمتید یک عراده موتر پلیت ۵۱۶۸۲-۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا سالون جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای عبدالمایل فرزند عبدالواحد بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۲۴۵

**اطلاعیه تغیر مکان رهنمای معاملات**

دفتر رهنمای معاملات بازر دارنده جواز شماره (۵۲۱۴) به اسم محترم محمد عمر فرزند محمد اکبر واقع پروژه تایمنی ناحیه ۴ موقعیت دارد و میخواهد به ساحه سرک اول پروژه تایمنی ناحیه ۴ شاروالی کابل نقل مکان نماید. بناء مراتب به آگاهی شما رسانیده شد.۹۲۴۰

**اطلاعیه تغیر مکان رهنمای معاملات**

دفتر رهنمای معاملات حریر دارنده جواز شماره (۳۲۹۷) به اسم محترم خواجه ذکریا فرزند خواجه حبیب واقع بین سرک ۳ و ۴ پروژه تایمنی ناحیه ۴ موقعیت دارد و میخواهد به ساحه بین سرک اول و دوم تایمنی ناحیه۴ شاروالی کابل نقل مکان نماید. بناء مراتب به آگاهی شما رسانیده شد.۹۲۳۵

**اطلاعیه تغیر مکان رهنمای معاملات**

دفتر رهنمای معاملات پاوات خنج به اسم محترم محمد قاسم فرزند محمد واصل ولدیت محمد حسن واقع مکروریان کهنه گردنه سمنت خانه ۱۶ موقعیت دارد و میخواهد به ساحه گردنه سمنت خانه ناحیه ۸ شاروالی کابل نقل مکان نماید. بناء مراتب به آگاهی شما رسانیده شد.۹۲۲۷

**اطلاعیه مفقودی**

یک قابل پلیت موتر دارای نمبر ۳۱۳۵ مادل ۲۰۱۲ رنگ سفید مربوط موسسه مید ایر مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۲۱۳

**اطلاعیه مفقودی**

یک جلد پاسپورت تجارتی به اسم مولاجان فرزند امیرجان مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۲۲۶

**اطلاعیه تغیر مکان رهنمای معاملات**

دفتر رهنمای معاملات آریانا کابل دارنده جواز شماره (۵۸۷۶) به اسم محترم پرویز فرزند رحیم شاه واقع سرک سوم تایمنی ناحیه ۴ موقعیت دارد و میخواهد به ساحه سرک اول پروژه تایمنی ناحیه ۴ شاروالی کابل نقل مکان نماید. بناء مراتب به آگاهی شما رسانیده شد.۹۲۲۹

**اطلاعیه مفقودی**

یک قطعه قباله شرعی نمبر ۱۵۲۳ مورخ ۱۳۲۰/۹/۲ مرتبه محکمه چهاردهی به اسم بازمحمد فرزند عتیق ولدیت فقیر محمد مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۲۴۴

**اطلاعیه فروش موتر**

اسامی محترم شرکت عزیز جمیل لمتید یک عراده موتر پلیت ۸۷۵۷۵-۲ ش کابل نوع تیوتا کرولاجاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای صفی الله فرزند غلام بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۲۳۰

**اطلاعیه مفقودی**

یک قطعه قباله شرعی نمبر ۲۸۲۱/۷۳۴ مورخ ۱۳۹۶/۵/۲۳ مرتبه محکمه حوزه چهارم وثایق به اسم سید اصغر فرزند سید اکبر خان ولدیت میرعبدالسلام مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۲۷۵

**اطلاعیه عام تصمیم اعطای قرارداد**

موضوع: اطلاع عقد قرارداد پروژه تهیه و تدارک ٥٦ قلم مواد مصرفی ضرورت شفاخانه تدریسی علی آباد بابت سال مالی ۱٤۰۳.

بدین وسیله به تأسی ازفقره (۲) ماده چهل و سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده می شود، شفاخانه تدریسی علی آباد در نظر دارد، قرارداد پروژه تهیه و تدارک ٥٦ قلم مواد مصرفی ضرورت شفاخانه تدریسی علی آباد برای سال مالی ۱٤۰۳ را به شرکت تجارتی دانیال تیک لمیتد دارای جواز نمبر: (۰۱۰۱-۱۹۱٦٥)آدرس: حصه سوم خیرخانه هوتل پروان، ناحیه ۱۱،مرکز کابل-کابل ,به قیمت مجموعی مبلغ (٤۸۲٥٥۱۰) چهار میلیون و هشتصدو بیست و پنج هزارو پنجصدو ده افغانی اعطاء نماید. اشخاص حقیقی و حکمی که هرگونه اعتراض در زمینه داشته باشند، می توانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توأم با دلایل آن به ریاست شفاخانه تدریسی علی آباد وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارائه نمایند.

این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی، قرارداد منعقدنخواهدشد.۹۲۵۵

**اطلاعیه عام تصمیم اعطای قرارداد**

موضوع: اطلاع عقد قرارداد پروژه تهیه و تدارک ٦٦ قلم مواد لابراتواری و ۲۸ قلم مواد پتالوژی ضرورت شفاخانه تدریسی علی آباد بابت سال مالی ۱٤۰۳.

بدین وسیله به تأسی ازفقره (۲) ماده چهل و سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده می شود، شفاخانه تدریسی علی آباد در نظر دارد، قرارداد پروژه تهیه و تدارک ٦٦ قلم لابراتواری و ۲۸ قلم مواد پتالوژی ضرورت شفاخانه تدریسی علی آباد برای سال مالی ۱٤۰۳ را به شرکت تجارتی دانیال تیک لمیتد دارای جواز نمبر: (۰۱۰۱-۱۹۱٦٥)آدرس: حصه سوم خیرخانه هوتل پروان، ناحیه۱۱،مرکز کابل-کابل,به‌قیمت مجموعی مبلغ (٦٧٦٧۰٧٤) شش میلیون و هفتصدو شصت و هفت هزارو هفتاد و چهار افغانی اعطاء نماید. اشخاص حقیقی و حکمی که هرگونه اعتراض در زمینه داشته باشند، می توانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توأم با دلایل آن به ریاست شفاخانه تدریسی علی آباد وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارائه نمایند.

این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی، قرارداد منعقدنخواهدشد.۹۲۵۴

### طرح اشغال...

لبنان این اظهارات ترمپ را خلاف قانون اساسی لبنان دانسته و رد کرد.

خلاصه اینکه شرق میانه و کشورهای عربی را خطرات مشترک آمریکا و اسرائیل عمیقاً تهدید نموده و معلوم نیست در دوران حکومت چهار ساله ترمپ چه حوادث ناخوش آیند و مخربی در شرق میانه رخ خواهد داد.

مصر، اردن، امارات، بحرین، مراکش و سودان دوستان سیاسی اسرائیل بوده و تنها سعودی است که تاکنون اسرائیل را برسمیت نشناخته و زیر فشار فزاینده آمریکا قرار دارد. دول عربی توان نظامی نداشته و حدود ۲۰ پایگاه نظامی امریکا عملاً در نقاط ستراتیژیک این کشورها مستقر هستند. از همینجاست که آمریکا نسبت به هر زمان دیگر، اشغال غزه و سپس واگذاری آن به اسرائیل را اهم و مناسب تلقی نموده و برای عملی نمودن آن تلاش می ورزد.

### بارانونه او واورې...

که کروندګر د اوبو د اغېزمنې کاروني لپاره پرمختللي مېتودونه وکاروي، نو د کرنې سکټور به لا پیاوړی شي.

بارانونه او واورې د خدای تعالی ستر نعمت دی، چې د هېواد د کرنیز اقتصاد، چاپېریال او د خلکو د ژوند پر ښه والي مثبتې اغېزې لري. دا زموږ دنده ده چې له دې نعمتونو سمه استفاده، د اوبو مدیریت ته جدي پاملرنه او د کرنې د ودې لپاره ګډ کار وکړو. که حکومت، کروندګر او عام خلک لاسونه سره یو کړي، افغانستان به نه یوازې د وچکالۍ له خطره وژغورل شي، بلکې د کرنیزو تولیداتو او اقتصادي ودې پر یو مهم مرکز به بدل شي.

### د اسلامي امارت...

د هیواد سرتاسري امنیت وساتي، د فتنو او شریرو استخباراتي پلانونو مخه ونیسي او د اسلامي نظام د دوام لپاره قوي نظامي بنسټ رامنځته کړي. د اسلامي امارت د پوځ قوت پر ایمان، انضباط، او اسلامي اصولو ولاړ دی، چې دا یې له اجیرو او استعماري پوځونو څخه جلا کوي. دا ځواک د مادي امتیازاتو پر ځای د الله رضا ته ژمن دی، د شرعي احکامو مطابق عمل کوي او د ولس ساتنه خپل مسؤلیت ګڼي. د امارت سرتېري د مشرتابه د امر تابع دي، بې هدفه تشدد نه کوي او د جګړې اسلامي اصول مراعاتوي. برعکس، استعماري پوځونه د بهرنیانو د ګټو لپاره کار کوي، د خپلو ملتونو پر ضد استعمالیږي او د ظلم، فساد، او استبداد وسیله وي، خو د اسلامي امارت پوځ یو خپلواک، ملي او اسلامي ځواک دی، چې د هیواد، ولس او اسلامي نظام دفاع ته ولاړ دی. اسلامي امارت د یو مشروع، قوي او ثابت اسلامي نظام نمونه ده. که اسلامي دولتونه غواړي چې خپل اسلامي هویت وساتي، باید له اسلامي امارت څخه تجربې تر لاسه کړي، د شریعت د حاکمیت، د ولس د ملاتړ او د خپلواک سیاست اصولو ته ژمن پاتې شي. تاریخ موږ ته ښیي، هغه اسلامي حکومتونه چې د دین، عدالت او ولس خیر ته ژمن وو اوږدمهاله پاتې شول او هغه چې د غرب د غلامۍ، ظلم او اقتصادي فساد ښکار شول، ډېر ژر له منځه ولاړل. اسلامي امارت د شریعت د حاکمیت، د ولس د خدمت او د عدالت د تامین لپاره خپل درېځ ثابت کړی او که د دې اصولو ساتنه وکړي، نو ان شاءالله د یو پیاوړي او با استقامته اسلامي دولت په توګه به تلپاتې پاتې شي.

### د جهادي ارزښتونو...

توګه خوندي او وساتل شي.د جهادي ارزښتونو د ساتنې عمومي رئیس مولوي ذبیح الله نوراني د بېلا بېلو ادارو له استازو څخه وغوښتل چې له یاد ریاست سره د جهادي ارزښتونو د ساتنې او د جهادي آثارو په راټولولو کې بشپړه همغږي او همکاري وکړي. د یادونې وړ ده چې د ادارو راغلو استازو د جهادي ارزښتونو د ساتنې او د جهادي آثارو راټولولو په برخه کې د هر ډول همکارۍ ژمنه وکړه.

### د ریاست الوزراء اداري...

پروژو تطبیق او هیوادوالو ته د کاري فرصتونو برابرولو ته ځانګړې پاملرنه وکړي.د ریاست الوزراء اداري مرستیال مولوي عبدالسلام حنفي په دې کتنه د خوښې څرګندولو ترڅنګ وویل: د امنیت تامین، د ټولنیزې هوساینې برابرول او د خلکو ستونزو ته رسیدګي د اسلامي امارت له مسئولیتونو څخه دي او په دې برخه کې خپلې هڅې نه درېغوي.د ریاست الوزراء اداري مرستیال هغوي ته ډاډ ورکړ او ویې ویل: افغانستان د ټولو افغانانو ګډ کور دي. د هیواد له ټولو مشرانو او شخصیتونو یې وغوښتل چې د هیواد په ابادۍ او پرمختګ کې برخه واخلي او له مسئولینو سره همکاري وکړي.

### د کندهار د دره نور...

چارې به ترسره کړي. د کانونو او پټرولیم وزارت سرپرست ملا هدایت الله بدري، په همدې مناسبت جوړه شوې غونډه کې وویل: ((د افغانستان د اسلامي امارت په راتګ سره، د کانونو او پټرولیم وزارت د مرمر ډبرو د زیات شمېر کانونو تړونونه لاسلیک کړي چې اوسمهال یې چارې په پوره روښتیا او چټکتیا سره رواني دي.))ملا بدري، د کندهار د دره نور مرمر ډبرو پروژې په اړه معلومات ورکړل او زیاته یې کړه: ((نن موږ د مرمر ډبرو د یوې سترې پروژې تړون چې د کندهار په دره نور سیمه کې موقعیت لري؛ له امي اوغلو ترکي شرکت سره لاسلیک کوو. یاد شرکت به د اکتشاف، استخراج او پروسس په برخه کې ۶.۲ میلیونه امریکایي ډالره پانګونه وکړي او دغه راز د خپلو ژمنو پر اساس به خپلې چارې د نړیوالو معیارونو مطابق ترسره کړي.))همدا رنګه، د «امي اوغلو» شرکت مرستیال، د دغه شرکت په اړه معلومات ورکړل او ویې ویل ،چې یاد شرکت د مرمر ډبرو، نفتو او ګازو کانونو د استخراج او پروسس په برخه کې ۵۰ کلنه تجربه لري.هغه ژمنه وکړه ،چې له تولید او پروسس وروسته به د افغانستان د مرمرو ډبرې په نړیواله کچه معرفي او ځانګړې پېرودونکي به ورته پیدا کړي.هېره دې نه وي چې د یاد کان د چارو په پیل سره به سلګونو کسانو ته د کار زمینه برابره او د سیمې اوسېدونکو ته به ګڼ شمېر ټولنیز خدمتونه وړاندې شي.

### د کندهار له مرکزي...

پیل لپاره یو غوره فرصت دي.هغوي ژمنه وکړه، چې خپلې تېروتنې به اصلاح او سالم ژوند به غوره کړي. د ځایي مسئولینو په وینا، دغه اقدام د خلکو له خوا هم د سولې او اصلاح په برخه کې یو مثبت ګام بلل شوي دي باختر

### د افغانستان خاوره...

ګازو د نل لیکې چارې په پوره جدیت سره رواني دي او د لاچټکتیا لپاره یې تاکل شوې چې د تورغونډۍ له لارې هم د نل لیکې غځولو چارې پیل شي.د دغه وزارت ویاند همایون افغان وایي، په ټاپي پروژه کې ټولو شریکو هېوادونو جدي هڅې پیل کړي چې د دغې نل لیکې چارې بشپړې او ګټې اخیستنې ته وړاندې شي.هغه زیاتوي: « د افغانستان په خاوره کې د اوس لپاره چارې یې په خورا چټکتیا سره پرمخ رواني دي، د چارو د لا چټکتیا لپاره په پلان کې دي چې د تورغونډۍ له مسیره هم د نل لیکې غځولو چارې پیل شي. د پروژې ټول دخیل هېوادونه په خورا جدیت سره کار کوي، ترڅو دغه نل لیکه وغځول شي او ټول هېوادونه یې له مزایاوو مستفید شي. د افغانستان لپاره خورا ډېرې ګټې لري، د اوس لپاره یې هم کاري فرصتونه رامنځته کړې او هرات ته په رسیدلو سره به افغانستان وکولي شي چې د ترکمنستان طبیعي، ارزانه او دوامداره ګازو ته لاسرسي پیدا کړي چې دا په خپله د افغانستان اقتصادي ودې او د صنعت پراختیا کې له موږ سره مرسته کولي شي.» د اقتصادي چارو شنونکي بیا وایي، د دغې پروژې په غځېدو سره به نه یوازې دا چې افغانانو ته کار پیدا شي بلکې په افغانستان کې به سترو پانګونو ته زمینه برابره شي چې دا هرڅه د خلکو پر ژوند مثبته اغېزه درلودلې شي.

### د موټرو د ګرندي...

او دا لړۍ لا هم روانه ده.یاد وزارت ټینګار کړی، چې د واټ ترانسپورټ خوندیتوب او د ترافیکي پېښو مخنیوي یې لومړیتوب دي او په دې اړه جدي کار او هڅې کوي.

### د قطر سره میاشت...

مولوي عبدالرحمن راشد د قطر له هېواده هم غوښتي، چې له ګاونډیو هېوادونو په زور راستنو شویو سره بشري مرستې ترسره کړي.ښاغلي راشد ویلي، موږ تل د قطر هېواد سره همکار وو او دغه همکاري به دوام وکړي.نوموړي له قطري لوري غوښتي، چې په پکتیا کې د کډوالو ښارګوټې پروژه جوړه کړي، ترڅو اړمن کسان ترې برخمن شي.

بل لور ته په افغانستان کې د قطر هېواد د سرې میاشتې رئیس حسین یونس ویلي؛ دا زموږ مسؤلیت دي، چې په افغانستان کې په ځانګړې توګه کډوالو سره، چې د هغوی حقوقي او قانوني حق دی مرسته وکړو.نوموړي زیاته کړې، د افغانستان په بېلابېلو ولایتونو کې یې خلکو ته بشري مرستې رسولې او زموږ موخه د اړینو مرستو رسول دي.همداراز د قطر هېواد د سرې میاشتې رئیس ښاغلي راشد ته ډاډ ورکړی، چې په نږدې راتلونکي کې به په پکتیا کې د کډوالو لپاره ښارګوټې جوړ شي.

### له هوکړې د اسرائیلو...

خبرتیا څنډېدلې.ښاغلي ابو عبیده ویلي، چې د حماس مشرتابه تېرو درېوو اوونیو کې له تړون څخه د اسرائیلو سرغړونې څارلې دي، چې د غزې شمال ته د بې ځایه شویو کسانو بېرته راګرځېدل یې ځنډول او خنډونه یې ورته ایجادول، د غزې تراړې په مختلفو سیمو کې هوایي بریدونه او ډزې ترسره کول او د تړون له مخې په کافي اندازه مرستندویو موادو ته اجازه نه ورکول، هغه څرګندې تخطۍ دي، چې اسرائیلي اشغالګرو ترسره کړې دي.نوموړي زیاته کړې، چې بله خوا د مقاومت جهادي ډلو خپلې ټولې ژمنې پلې کړې دي.

حماس جهادي غورځنګ پر اسرائیلو غږ کړي، چې خپلې ژمنې پلي کړئ او د تېرو اوونیو حقونه بېرته فلسطیني ولس ته ورکړئ، چې د نه عمل په صورت کې به د بندیانو تبادله ځنډېدلې وي.حماس ډاډ څرګند کړي، چې دوی د هوکړې تطبیق ته په پوره معنا ژمن دي، خو که اسرائیل ورته ژمن پاتې شي.د یادونې وړ ده، چې اسرائیلي اشغالګرو په خپل تاریخ کې هره هوکړه ماته کړې او له هر تړون او وعدې یې سرغړاوی کړی دی، چې د غزې وروستي تړون یې څرګند مثال دي.

### فراه کې ګڼې ...

ته هم برښنا برابره شي)) د سیمه ییزو مسئولینو په وینا، فراه ښار کې د برښنا برابرول د سیمې د خلکو پر ژوند او اقتصادي فعالیتونو مثبته اغېزه کړې ده.ځایي اوسېدونکي اوسنۍ برښنا د ټولو لپاره کافي نه بولي او له مسئولینو څخه په دې برخه کې د لا زیاتو هڅو او د بخش اباد بند د ژر تر ژره رغولو غوښتنه هم کوي.

### تېر کال د وسپنې...

څه باندې ۹۲ زره مټریک ټنه یې واردات دي،چې زیات انتقالات له حیرتان بندره شوي دي.))حقشناس زیاتوي: په دې صادراتو او وارداتو کې خوراکي توکي، تېل، ګاز، د انارو جوس او قیمتي ډبرې شاملې دي.

((تېر کال د منځنۍ آسیا هېوادونو ته موږ د خوراکي او نفتي توکو واردات زیات لرل او دغه راز مو ایران، ترکمنستان او یو شمېر نورو هېوادونو ته د انارو جوس او د معدني ډبرو صادرات درلودل.))په ورته وخت کې د اقتصادي چارو یو شمېر مبصرین د وسپنې پټلۍ له لارې د ترانزیټي توکو لېږد رالېږد اسانه او ارزانه بولي او زیاتوي ،چې په کمه موده کې یې مارکېټ ته رسولای شي.د اقتصادي چارو مبصر، محمد عیسی مبارز د وسپنې پټلۍ له لارې سوداګریزه راکړه ورکړه ګټوره بولي او ټینګار کوي ،چې دغه لاره سوداګرۍ ته زیان نه رسوي.(( که چېرته افغانستان له نورو هېوادونو سره راکړه ورکړه غواړي او بهر ته لاره نه لري؛ نو اسانه لاره هغه رېل پټلۍ ده، چې سوداګر ته زیان نه رسوي او ارزانه لاره بلل کېږي.)) د اقتصادي چارو بل مبصر عبدالنصیر رشتیا بیا وایي: د وسپنې پټلۍ له لارې د سوداګریزو توکو لېږد رالېږد په بازارونو کې د توکو پر بیو هم اغېزه کوي.((د وسپنې پټلۍ له لارې چې کله صادرات او واردات کېږي؛ نو په کم لګښت او په لږ وخت کې سوداګریز توکي ټاکل شوي ځای ته رسوي. کله ،چې له دې لارې انتقالات کېږي، په بازارونو کې د توکو پر بیو هم ډېر اثر پرېباسي.))

د یادونې وړ ده، چې د افغانستان د ټولګټو چارو وزارت د وسپنیزې کرښې مرستیال د رواني سلواغې میاشتې پر شپږمه نېټه، ازبیکستان ته د خپل سفر په ترڅ کې د افغانستان، ازبیکستان، قرغېزستان او چین هېوادونو ترمنځ د څلور اړخیز رېلي دهلېز تړون د روان ۲۰۲۵ کال لپاره وغځول شو.

### له اکشن ایډ...

کړې، چې په دې برخه کې همکاري وکړي.د اکشن ایډ موسسې رئیس سري کانتا میسرا د پېښو پر وړاندې د مبارزې ملي اداري د رئیس له همکاریو مننه کړې او ویلي یې دي، دا موسسه د بشردوستانه او پراختیایي مرستو په برخو کې فعالیت کوي.نوموړي زیاته کړې، چې یاده موسسه به دوه زره او ۸۱۲ کورنیو ته په څلورو پړاوونو کې نغدي مرستې ووېشي او یو زر او ۲۷۴ کورنیو ته به د څارویو د وښو برابرولو په موخه په سیغان، شیبر او د بامیانو ولایت مرکز کې نغدي مرستې ووېشي.د یادونې وړ ده، چې د دې هوکړې له مخې ۷۹۹ زره او ۵۱۴ ډالره به دوه زره ۸۱۲ کورنیو ته په سیغان، شیبر او د بامیانو ولایت مرکز کې ووېشل شي، چې هرې کورنۍ ته به د خوراکي توکو د برابرولو لپاره په څلورو پړاوونو کې ۱۷۲.۱۲ ډالر ورکول کېږي او یو زر او ۲۷۴ کورنیو ته به د څارویو د وښو برابرولو لپاره هرې کورنۍ ته ۹۵ ډالره ورکول کېږي.

### ننګرهار کې...

کارونه به یې شروع شي. تاسو عملاً په ننګرهار کې لویې او کوچنۍ پروژې ګورئ چې شروع دي او ځینې یې د شروع کېدو په حال کې دي.))ننګرهار مېشتي که له یوه لوري د دغو روغتیایي مرکزونو د چارو بشپړېدو ته خوښ دي، خو د روغتیایي پرسونل او درملو د کمښت ستونزې ته په اشارې ټینګار کوي چې مسئولین باید دغې برخې ته هم پاملرنه وکړي.ننګرهار کې د روغتیایي مرکزونو د نیمګړو چارو د بشپړولو کارونه داسې مهال پیل کېږي چې له دې وړاندې د ننګرهار په پنځو نورو ولسوالیو کې د ولسوالۍ په کچه د روغتونونو د جوړولو چارې هم عملاً پیل شوي دي.

### پکتیکا او...

درې زره او پنځه سوه (۳۵۰۰) جریبه ځمکه توپوګرافي سروې کړه.نوموړي وایي، دغه چاره په دې موخه وشوه چې، هلته د مهاجرینو لپاره منظم ښارګوټي جوړېږي.د کور او ښار جوړولو وزارت چې د مهاجرینو د ستونزو د حل کمېسیون کې د (اسکان دایمي) کمېټې مشري په غاړه لري، هڅې کوي چې، په ټولو ولایتونو کې د نفوسو کچې ته په کتو منظم ښارګوټي جوړ کړي.

دغه راز، د کور او ښار جوړولو وزارت د سروې او جي، اي، ایس رئیس حافظ انجنیر یوسف لطیف وایي، د ریاست اړوند تخنیکي او مسلکي ټیم یې په لوګر ولایت کې سلګونه جریبه ځمکه سروې کړه. ښاغلي حافظ لطیف وایي، یاد ټیم یې د لوګر په پورک بازار ساحه کې (۳۲۹,۹۱۲) جریبه ځمکه توپوګرافي سروې کړه.نوموړي وایي، دغه چاره په دې موخه وشوه چې، هلته د یاد بازار لپاره تفصیلي پلان جوړ شي، تر څو راتلونکي کې ټولې چارې د پلان له مخې پر مخ لاړې شي.د کور او ښار جوړولو وزارت خپلو امکاناتو او اړتیاوو ته په کتو د هرې ولسوالۍ او مهم ځای لپاره تفصیلي پلان جوړوي او د تطبیق لپاره یې اړوندو ښاروالیو او یا خصوصي سکتور ته ورکوي چې بیا د خپلو پلانونو له تطبیقه څارنه هم کوي.

### د غزني ناوې ...

د یادونې وړ ده، چې دا مهال د اسلامي امارت له لوري د غزني قره باغ ولسوالۍ کې هم د زردالو بند د جوړولو چارې دوام لري.

### کار باقیمانده...

مطابق پلان و نقشه ویزه شده به اتمام برسد.وزارت شهرسازی و مسکن پروژه های دولتی را طرح و دیزاین و از تطبیق آن نیز نظارت می کند.

### هلمند کې...

مهاجرینو او مختار معلمینو د دوهم فاز سړک د پخولو چارې پیل شوې دي.نوموړي زیاته کړې، چې د یاد سړک د دربیم فاز چارې به هم ډېر ژر پیل شي.

د سیمې اوسېدونکو د یادې پروژې په پلي کېدو خوښي ښودلې او وایي، چې د دغه سړک په جوړېدو سره به یې د تګ را تګ ستونزې حل او په ترانسپورتي برخه کې به ورته ګڼې اسانتیاوې برابرې شي.

### پکتیکا کې ۲ ټنه...

او تاریخ تېره خوراکي توکي و نه پلوري او له ولسونو هم غواړي چې د توکو د اخیستو پرمهال دې د بې کیفیته او تاریخ تېره توکو په اړه له دوي سره همکاري وکړي.

د یادونې وړ ده، څه موده وړاندې هم د یاد ولایت د عامې روغتیا ریاست له لوري شاوخوا ۵۷ ټنه بې کیفیته او تاریخ تېره درمل او خوراکي توکي وسوځول شول.

### پکتیکا کې ۱۰۰ کلنه...

خلکو په وینا، یاده دښمني شاوخوا ۱۰۰ کاله وړاندې د غره پر سر پیل شوې وه او د وخت په تېرېدو سره ورځ تر بلې زیاته شوه چې دواړو قومونو ته یې درانه زیانونه واړول.

د یادونې وړ ده چې د اسلامي امارت په راتګ سره په پکتیکا ولایت کې ګڼې نورې روغې جوړې هم شوې دي.

# Hewad Daily

چهارشنبه د شعبان المعظم ۱۳مه ۱٤٤٦ ق کال د ۱٤۰۳ ل کال د سلواغې ۲٤مه د 2025 م کال د فبروري 12مه

د ورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر« بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲٦۳٤۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷٤۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ کابل - افغانستان
دارېکو شمېره: ۰۲۰ - ۲۵۲٦۳٤۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیواد ورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
وېب سایت: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷٦٦۰۴۴۹٦٦-۰۷۳٦۰٦۰۷۳


## د قطر سره میاشت پکتیا کې د کډوالو لپاره ښارګوټی جوړوي




د قطر هېواد د سرې میاشتې رئیس حسین یونس او مل پلاوي د کډوالو او راستنېدونکو چارو وزارت له مسلکي مرستیال مولوي عبدالرحمن راشد سره لیدنه وکړه. په دې لیدنه کې مولوي عبدالرحمن راشد د قطر سرې میاشتې رییس او مل پلاوي ته د ښه راغلاست تر څنګ ویلي؛ د افغانستان اسلامي امارت د قطر هېواد سره ښې او نیکې اړیکې لري او د اسلامي امارت په راتګ سره په ټول هېواد کې امنیت ښه شوی او د همکارو موسسو لپاره د مرستو رسولو په برخه کې ښه زمینه برابره شوې ده. نوموړي زیاته کړې: افغانستان ډېر شمېر کډوال او بې ځایه شوي لري او همداراز یې له همکارو بنسټونو غوښتي، چې له هغوی سره په بېلا بېلو برخو کې مرستې وکړي...**۳مخ**

## له هوکړې د اسرائیلو سرغړونې؛ حماس د اسرائیلي بندیانو تبادله وځنډوله

د حماس جهادي غورځنګ ویاند ابو عبیده خبر ورکړی، چې له شوې هوکړې څخه د اسرائیلي لرې وځنډوله. ټاکل شوې وه، چې د اسرائیلي بندیانو بله تبادله به راتلونکې شنبه ترسره شي، خو




اشغالګرو د پرله پسې سرغړونو له امله یې د اسرائیلي بندیانو د تبادلې حماس جهادي غورځنګ ویلي، چې تر بلې...**۳مخ**

## فراه کې ګڼې کورنۍ له برښنا برخمنې شوې

د فراه ولایت د برښنا شرکت مسئولین وایي، چې د اسلامي امارت له بیا واکمنېدو وروسته په دغه ولایت کې ۴ زره کورنۍ له برښنا برخمنې شوې دي. د یاد ولایت د برښنا شرکت د عملیاتو مدیر صلاح‌الدین باختر آژانس ته ویلي: (( اوس مهال د ښار د ۵ ناحیو اوسېدونکو ته برښنا برابره شوې او په نږدې راتلونکې کې به د یو بل ترانسفارمر په لګولو سره د فراه ښار د ۶ نورو ناحیو اوسېدونکو...**۳مخ**

## تېر کال د وسپنې پټلۍ له لارې شاوخوا ۴،۳ میلیونه متریک ټنه انتقالات شوي



د ټولګټو چارو وزارت چارواکي وايي: تېر ۲۰۲۴ کال کې د وسپنې پټلۍ له لارې شاوخوا ۴،۳۱ میلیونه متریک ټنه سوداګریز توکي لېږدول شوي دي. د یاد وزارت ویاند محمد اشرف حق‌شناس وايي: دغه توکي د حیرتان، آقینې، تورغونډۍ او د هرات ـ خواف بندرونو له لارې لېږدول شوي چې ۴،۳ میلیونه متریک ټنه یې صادرات او ۹۲زره متریک ټنه صادرات دي.

(( په ۲۰۲۴ زېږدیز کال کې د هېواد له څلورو بندرونو څخه د ۴،۳ میلیونه متریک ټنه توکو انتقالات شوي ، چې ډېره برخه ۴،۲ میلیونه متریک ټنه یې صادرات او ...**۳مخ**

## له اکشن ایډ موسسې سره د ګډو همکاریو هوکړه وشوه

د پېښو پر وړاندې د مبارزې ملي اداري رئیس ملا نورالدین ترابي د دفتر کې لیدنه کړې او د ګډو همکاریو هوکړه‌لیک یې ورسره




اکشن ایډ موسسې له رئیس سري کانتا میسرا سره په خپل کاري لاسلیک کړ. په دې لیدنه کې ملا نورالدین ترابي ویلي؛ موږ د خپلو خلکو د لا ښه خدمت او هغوی ته د زیاتو مرستو رسولو په لټه کې یو، له همدې امله نه یوازې دا چې د مرستندویو موسسو ملاتړ کوو، بلکې هغوی هڅوو چې له زیانمنو خلکو سره د مرستو او د هغوی د ستونزو د کمولو لپاره لا زیاته بودجه ځانګړې کړي. نوموړي زیاته کړې، افغانستان د خپل جغرافیوي موقعیت له مخې له طبیعي پېښو زیانمن دی او د وقایوي پروژو پلي کولو ته اړتیا لري. ښاغلي ترابي له موسسو غوښتنه...**۳مخ**

## ننګرهار کې د ۵ نیمګړو روغتیايي پروژو چارې پیل شوې

د ننګرهار په مرکز جلال اباد ښار او څلورو ولسوالیو کې د هغو روغتیايي پروژو د بشپړولو چارې پیل شوې، چې د مخکېني حصارک او شېرزادو ولسوالیو روغتیايي مرکزونه او د عامې روغتیا ریاست د ودانۍ د پاتې ۲۰ سلنه چارو بشپړول شامل دي. د



حکومت پر مهال نیمګړې پاتې وې. د یاد ولایت د عامې روغتیا ریاست مسئولین وايي: په دغو پروژو کې د بتیکوټ، روداتو، ننګرهار د عامې روغتیا رئیس مولوي امین الله شریف وایي: (( د کابل په تېره اداره کې یې ۲۰ سلنه کار پاتې و او ۸۰ سلنه کار یې بشپړ شوی و، نو عملاً په دې باندې کار پیل کوو، ۳۴ یا ۳۵ خوني لري، په دې کې بېلابېلې څانګې دي چې هغه نسایي ولادي څانګه ده، بستر دی، د ماشومانو څانګه ده، مختلفې څانګې په دې کې شاملې دي. ان شاء الله دغه ولسونه به له دې ګټه اخلي.)) چارواکي دغه راز ډاډ ورکوي، چې نږدې وخت کې به د ختیځ روغتیايي کمپلکس د پاتې کارونو د بشپړولو عملي کارونه هم پیل شي. د ننګرهار مرستیال والي مولوي عزیزالله مصطفي وايي: (( زموږ د عامې روغتیا د رئیس په مشرۍ او له مرکزه هم د مشرانو پر راتګ باندې به د مشرقي زون لپاره د زر بستریز روغتون پرانیسته‌هم‌وشي...**۳مخ**

## پکتیکا او لوګر کې زرګونه جریبه ځمکه سروې شوه

د کور او ښار جوړولو وزارت د سروې او جي، اي، ایس رئیس حافظ انجنیر یوسف لطیف وایي، د ریاست اړوند تخنیکي او مسلکي ټیم یې په پکتیکا ولایت کې زرګونه جریبه



ځمکه توپوګرافي سروې کړه. ښاغلي حافظ لطیف وایي، یاد ټیم یې په پکتیکا کې...**۳مخ**

## د غزني ناوې ولسوالۍ کې د اوبو بند د جوړولو چارې پیل شوې

د کلیو د بیارغونې او پراختیا وزارت ویلي، د غزني ولایت د ناوې ولسوالۍ فیضو کلي کې یې د ۱۹ میلیونه افغانیو په لګښت د اوبو بند د جوړولو چارې پیل کړي. د یاد وزارت د خبر له مخې ، د دې بند د بنسټ ډېره د کلیو د بیارغونې او پراختیا د وزیر ملا محمد یونس اخندزاده له لوري کېښودل شوې. د اوبو دغه بند ۲۱۰ متره اوږدوالي او ۶متره لوړوالي سره د ۳۰ متره مکعبو اوبو د ذخیره کولو وړتیا لري. د دې بند په جوړېدو سره به د یادې سیمې د اوبو ستونزې د حل ترڅنګ د باران اوبه مهار او د ځمکې لاندې اوبو ذخیرې به هم پیاوړې شي...**۳مخ**

## کار باقیمانده تعمیر اداری ریاست نظارت و تعقیب فرامین در لوگرآغاز میشود

مولوی مطیع الله زاهد رئیس شهرسازی و مسکن ولایت لوگر می گوید که قسمتی از کارهای ساختمانی تعمیر اداری ریاست نظارت و تعقیب فرامین در ولایت در رابطه به آن با یک شرکت خصوصی قرارداد شده است. وی گفت، توقع میرود که ۳۰ درصد کار باقیمانده نیز تا پایان ماه دوم ۱٤۰٤ به اتمام برسد و پس از آن به



لوگر قبلاً انجام شده، اما ناتمام مانده بود. مولوی زاهد می گوید که کار ۳۰ درصد باقیمانده تعمیر اداری یاده شده آغاز می شود که بهره برداری سپرده شود. ریاست شهرسازی و مسکن ولایت لوگر نظارت و ارزیابی می کند و سعی دارد که کار ...**ص۳**

## هلمند کې د سړک پخولو چارې پیل شوې

د هلمند ولایت د مرکز لښکرګاه ښار اړوند په شپږمه ناحیه کې د څه باندې ۱۵ میلیونه افغانیو په لګښت د مهاجرینو او مختار معلمینو د دوهم فاز سړک د پخولو چارې پیل شوې دي. د لښکرګاه ښاروالۍ د نظارت او ارزیابۍ مدیر محمد عباس زیرک باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې دغه سړک د ښاروالۍ ریاست له انکشافي بودجې څخه د ۱۵ میلیونه ۳۸۶ زره ۹۰۴ افغانیو په لګښت د ۱۳۰۰ متره په اوږدوالي او د ۸ متره په سور سره د...**۳مخ**

## پکتیکا کې ۲ ټنه زاړه توکي وسوځول شول

د پکتیکا ولایت د صنعت او سوداګرۍ ریاست د مستهلکینو ولسوالۍ له هتیو څخه د ۲ ټنه بې کیفیه او تاریخ تېره خوراکي توکو



د ملاتړ کمېټې مسئولینو د دوو ورځو په بهیر کې د زرغون شهر دراټولولو او سوځولو خبرورکړې دي. د یاد ریاست د صنعتي پارکونو او سوداګریزو چارو آمرخیال محمد استقلال وایي، چې دوی د څار لپاره یوه ځانګړې کمېټه لري ،چې د ښار په دننه کې څارنه کوي او له هتیو څخه بې کیفیته او تاریخ تېره خوراکي او غیر خوراکي توکي راټولوي.

نوموړي زیاته کړه چې دغه راټول کړای شوي توکي د زرغون شهر د ولسوال ملا جاوید بدري په شتون کې وسوځول شول. په ورته وخت کې د زرغون شهر ولسوال په هټیوالو غږ وکړ چې دوی په ولسونو بې کیفیته ...**۳مخ**

## پکتیکا کې ۱۰۰ کلنه دښمني پای ته ورسېده

د پکتیکا ولایت په چهاربران ولسوالۍ کې د هوسخېلو او علیزیو دوو قومونو ترمنځ ۱۰۰ عبدالخالق عابد، ولسوال، علماوو او قومي مشرانو په منځګړیتوب پای ته ورسېده او په ورورګلوي



کلنه دښمني د پکتیکا د والي ملا بدله شوه. په جوړه شوې ناسته کې د پکتیکا والي الحاج ملا عبدالخالق عابد وویل چې د علماوو او قومي مشرانو په نه ستړې کېدونکو هڅو سره دغه اوږدمهاله دښمني حل شوه او دواړه قومونه به له دې وروسته د سولې او ورور ګلوۍ په فضا کې ژوند ولري.

د هوسخېلو او علیزیو مشرانو د پکتیکا له والي څخه مننه وکړه او یادونه یې وکړه چې د والي او علماوو د همکارۍ له برکته یې د اوږدمهالې دښمنۍ تغر ټول شو. د سیمه ییزو ...**۳مخ**